## فهرست

## لومړی څپرکی

## د نامعین ساختمانونو پیژندنه



## دوهم څپرکی

## د قوي میتود



## دریم څپرکی

## مومنټ دستربیوشن او کني میتود

## څلورم څپرکی

## د میلان او کړوپیدني میتود



## پنځم څپرکی

## دري مومنټه معادله

## شپږم څپرکی

## د اوړدیدني میتود یا stiffness میتود

# 1

# لومړی څپرکی
# د ناټاکلي ستاتیکي سیستمونو پیژندنه

## 1.1تعارف (Introduction)

د ساختمانونو د تحلیل لومړي برخه کي مو په تفصیل سره د معین ستاتتیکی ساختمانونو په تحلیل خبره کړي وه په نوموړي فصل کي دهغه ساختمانونو تحلیل تر څیړني لاندي نیسو کوم چي د تعادلي معادلو په مرسته نه تحلیلیږي .کله چي د نامعلومو قواو شمیر د تعادل معادلو څخه زیاتیږي په داسي حال کي ساختمان د خپل تعادل د لاري نه تحلیلیږي تر څو د نامعین ساختمانونو لپاره وضع شویو میتودونو څخه استفاده ونه شي .

څرنګه چي پوهیږو په عملي ډګر کي زیاتره ساختمانونه یو شمیر اضافي اتکاګاني او یا هم مختلف ډول برخي لري کوم چي ساختمانونه د معین څخه نامعین (Indeterminate) ته بدلوي.د بیلګي په توګه یو اوسپنیز کانکریټي ساختمان (Reinforced Concrete Structure) چي د سلب، بیم ، پایه او تهداب څخه یي جوړښت موندلي وي د مسلسل ګاډرونو، سلبونو او پایو په شکل کي موجود وي نوموړي مسلسل ساختماني عناصر د موجوده تعادلي معادلو څخه زیات داخلي او یا هم خارجي قواوي لري او په عادي طریقه نه شي پیداکیدي

د نامعین ساختمانونو تحلیل په عمومي توګه په دوو طریقو کیږی .

1- د قوي میتودونه (Force Methods)

2- د اوږدیدني میتودونه (Displacement Methods)

په لومړي میتود کي د قواو په واسطه اوړدیدنه (Displacement) لاس ته راوړل کیږي او د Compatibility equations په کارولو سره د اوړدیدني څخه نامعلوم قواوي پیدا کیږي.

په دوهمه میتود کي د اوړدیدني (displacement) او تاویدني په واسطه قواوي لاس ته راوړل کیږي او د Compatibiltity equations په کارولوسره نامعلوم فورسونه پیدا کیږي.

## 1.2 د معین او نامعین سیستمونو ګټې او زیانونه

د نامعین ساختمانونو تحلیل د معین ساختمانونو پرتله ډیر پیچلي کار دی اما د دا ډول ساختمانونو ډیزاین کول یو شمیر ګټې او زیانونه هم لري

1. د یو ورکړشوي بار لپاره ناسته او تشنجات په ناټاکلي ستاتیکي ساختمان کي د ټاکلي سیستم پرتله ډیر کم وي. د بیلګي په توګه په لاندي ورکړشوي شکل (a) کي یو ګاډر چې په دواړو انجامونوکي سختي اتکاګانی لري ( نامعین ساختمان ) ښودل شوي.د نومړي ګاډر په منحځنی نقطه کي $\frac{pl}{8}$ مومنټ پیدا کیږي اما کله چي همدغه ګاډر ساده اتکاءګاني ولري ( شکل B ) د اعظمي مومنټ اندازه دوچند کیږي.په شکل B کي د مومنټ اندازه $\frac{pl}{4}$ ده.




2. د ساختمانونو ډیزاین یو پیچلي کاردي او د غلطۍ احتمالات پکي ډیر زیات وي ، نامعین ساختمانونه د وارده بارونو د ویشني صلاحیت لري هرکله چي د ساختمان په یوه برخه کي تشنجات د خپل حدودو تجاوز کوي او په ساختمان کي اضافي اتکاګاني هم موجود وي ،

په داسي حال کي نوموړی اضافي بار دبهرانی مقطعی Critical section سره وصل شویو برخو ته لیږدول کیږي او ساختمان د ویجاړتیا او یا هم د ماتیدو څخه ژغورل کیږي.
د بیلګي په توګه که چیري په پورته ورکړ شوي شکل (a) کی د بار اندازه ډیره زیاته کړي شي د ګاډر مواد په انجامونو کي او په مینځ کی ایلډینګ (yielding) شروع کوي او په نتیجه کي یې ځاي پلاستیکي ساکني اتکاګاني (Localised Plastic hinges) پیدا کیږي ، نوموړي پلاستیکي هنجونه ګاډر مجبوروي چي کړوپیدنه وکړي کله چي کړوپیدنه (deflection) اعظمي شي د ګاډر اتکاګانی افقي قواوی او مومنټونه واردوی ترڅو ساختمان د مکمل ماتیدو څخه وژغوري.په شکل (b) کي د بار په زیاتوالي سره Plastic hinge د ګاډر په مینځ کي پیدا کیږي او اتکاګاني هیڅ ډول افقي او یا هم مومنټي عکس العملونه نه پیدا کوي په پایله کي د ډیر زیات کړوپیدني له امله ګاډر ماتیګي.

3. د نامعین ستاتیکي ساختمانونو ابعاد نظر معین ساختمانونوته ډیر کوچني وي د بیلګي په توګه یوه وایه لرونکی ساده اتکایي ګاډر لپاره د ACI Code له مخي اصغري پنډوالي (thickness) $\frac{l}{16}$ دي او مسلسل ګاډر چي دوه وایي ولري اصغري پنډوالي یې $\frac{l}{24}$ دي
4. د ناټاکلي ستاتیکي ساختمانونو د جوړخت مصارف نظر ټاکلي ساختمانونو ته ډیر زیات وي
5. ناټاکلي ساختمانونه زیاتره وخت یو شمیر اتکاګاني لري ، او د ناستي (differential settlement) امکانات پکي ډیر زیات وي .نوموړي deflection په ساختمان کي تشنجات پیداکوي د دي برعکس په ټاکلي ستاتیکي ساختمانونو کي اتکایي ناسته د اتکاګانود نوعیت له امله په ساختمان کي تشنجات نه پیداکوي دا په دي معني چي کله د ساختمان مختلفي برخي خپلو کي سره د مختلفو اتکاګانو په واسطه تړل شوي وي ، اتکایي ناسته د ساختماني شخوالي له امله په داخل د ساختمان کي تشنجات پیداکوي .که چیري اتکاګاني مومنټ ته اجازه ورکونکی (Hingr, Roller) وي په داسي حال کي deflection تشنجات نه پیداکوي.
6. نامعین ستاتیکي سیستمونه ډیر شخوالي لري اود ناستي اندازه پکي نسبتاً کمه وي

## د تحلیل میتودونه (Methods of Analysis)

د نامعین ستاتیکي ساختمانونو تحلیل لپاره لاندي ورکړ شوي شرائط ترسره کول حتمي دي.

1. د تعادل حالت (Equilibrium condition)
2. د برابري حالت (Compatibility condition)
3. د قوي – اوړدیدني حالت (Force-displacement condition)

د تعادل حالت په هغه وخت کي ترسره کیږي کله چي د وارده بارونو په پایله کي ساختمان د خپل توازن او ستاتیک حالت برقرار وساتي.

Compatibilityدي ته وایي چي د ساختمان مختلفي برخي خپلو کي په صحیح ډول وصل شوي وي او قصداً هیڅ ماتوالي یا overlap ونلري.

دریم حالت د موادو په غبرګون پوري اړه لري ( Linear Elastic Response )

### 1) د قوي میتود (Force or Flexibility Method)

نومړي میتودد نامعین ساختمانونو تحلیل لپاره د لومړیو وضع شویو میتودونو څخه یو ده. نومړي میتود په ۱۸۶۴ کي لومړي ځل لپاره James Clerk Maxwell وړاندي کړه او وروسته د Otto Mohr له اړخه په موجوده شکل تبدیل شوه.څرنګه چي د نومړي میتود اساس پر Compatibility ولاړ دي همداراز نومړي میتود د method Compatibility یا consistent deformation method په نامه هم یادیږي.

په نومړي میتود کي لومړی مختلف معادلي کوم چي پورته تشریح شوي حالتونه په صحیح ډول تکمیلوي استعمالیږي او د نومړیو معادلو په واسطه د ساختمان نامعلومي قواوي او مومنتونه لاس ته راوړل کیږي.په ساختمان کي اضافي نامعلومو قواو ته Redundant forces وییل کیږي.

د Redundant Forces پيدا كولو وروسته نور اغيزمني قوي د تعادل حالت او ساختمان لپاره د استعمال وړ تعادلي معادلو په مرسته پيدا كيږي.

## 2) د اوږديدني ميتود (Displacement Method)

په نوموړي ميتود كي لومړئ د قوي او اوږديدني ترمنځ تعلق او رابطه د معادلو په شكل كي صورت نيسي او وروسته د تعادلي شرايطو په پوره كولو سره د ساختمان تحليل تر پايي رسول كيږي په اسانو ټكو په نوموړي ميتود كي لومړي اوږديدنه (Displacement) محاسبه كيږي بياد اوږديدني په كارولو سره نامعلومي قواوي لاس ته راوړل كيږي.د ساختماني ميخانيک په دی برخه كي لومړي د معادلو په واسطه تحليل ترسره كيږي او وروسته د matrix په كارولو سره د ګاډرونو ، چوكاټونو او ترسونو تحليل په اسانه او چټک ډول تر څيړني لاندي نيول كيږي.

| | Unknowns | Equations Used for Solution | Coefficients of the Unknowns |
|---|---|---|---|
| Force Method | Forces | Compatibility and Force Displacement | Flexibility Coefficients |
| Displacement Method | Displacements | Equilibrium and Force Displacement | Stiffness Coefficients |

## د نامعین ستاتیکي ساختمانو مثالونه :



The fixed connected joints of this concrete framework makes it statically indeterminate

په انځور کي یو اوسپنیز کانکریټي ساختمان ښودل شوي ، د نوموړي ساختمان ټولي برخي د سختو غوټو په واسطه تړل شوي او نوموړي خاصیت په ساختمان کي د نامعلومو قواو شتون لا زیاتوي.

د دا ډول ساختمانو په تحلیل کي پورته تشریح شوي میتودونه کلیدي رول لوبوي .



په پورتني انځور کي يو اوسپنيز کانکريتي ساختمان د جوړولو په حالت کی ښودل شوي. د بيلګي په توګه که چيري د نوموړي ساختمان مسلسل ګاډرونه( په جلا ډول ) يا هم مسلسل وايې لرونکي چوکاټونه په نظر کي ونيول شي په داسي حال کي ساختمان د يو شمير نامعلومو قواو تر اغيزي لاندي قرار لري نوموړي نامعلومي قواوي د اتکايې عکس العملونو ، تشنجاتو ، کړوپيدني ،عرضي قواو او مومنتونو څخه عبارت دي لکه څرنګه چي په پورته انځور کي ښودل شوي.په داسي حال کي چي د نامعلومو قواو شمير د تعادلي معادلو څخه زيات وي ساختمان نامعين بلل کيږي.

د نوموړيو نامعلومو قواو محاسبه کولو لپاره د پورته تشريح شويو ميتودونو څخه استفاده کوو

2

# دوهم څپرکی

# د ناټاکلي ستاتیکي سیستمونو تحلیل د قوي میتود د لاري

# (Force Method of indeterminate Analysis)

## 1.1 عمومي کړنلاره (General Procedure)



actual beam
(a)

په شکل (a) کي یو بیم کوم چي د P متمرکز بار لاندي واقع دي ښودل شوي.د نوموړي بیم څلور اتکایې عکس العملونه کوم چي د تعادل معادلو (۳) څخه زیات دي بیم په یوه درجه نامعین سیستم بدلوي په داسي حال کي ساختمان په عادي طریقه نشي تحلیلیدي ترڅو یو اضافي معادله جوړه شي او د ساختمان تحلیل بشپړشي.د نوموړي معادلي جوړولو لپاره د تجمع قاعدي (Principle of Superposition) او د برابري حالت څخه استفاده کیږي .لومړي یو اتکایې عکس العمل اضافي (Redundat) فرض کیږي او تاثیر یې د ساختمان څخه موقتي لري کیږي تر څو ساختمان د معین ستاتیکي سیستم په څیر د تعادل معادلو سره مساوي عکس العملونه ولري.په دي مثال کي مونږ د B اتکا ء څخه عمودي غبرګون اضافي (Redundant) فرض کوو، د Redundant لري کولو وروسته باید ساختمان خپله استواري د لاسه ورنکړي ، ګاډر لاندي شکل اختیاروي.



primary structure
(b)

په شکل B کي که وګورو ساختمان معین ستاتیکي کنسولي ګاډر دي ، د B اتکاء څخه عکس العمل لري کولو سره نوموړي اتکاي نقطه کړوپیدنه یا ناسته کوي کوم چي د $\Delta_B$ په توري ښودل شوي.په نوموړي مثال کي دB نقطي د

کړوپیدني یا ناستي (Displacement) د برابرۍ حالت (Compatibility condition) په نظر کي نیول کیږي.

کله چي د B نقطي ځخه د بار د برداشت کولو صالحیت واخیستل شی ، اغیزمن متمرکز بار د ګاډر په په B ټکي د $\Delta_B$ په اندازه ناسته پیدا کوي .( شکل b )

همدارنګه اضافي فرض شوي عکس العمل ($B_y$) د بیم په B ټکي کي $B_y f_{BB}$ په اندازه پورتني جهت کي کړوپیدنه یا ناسته پیدا کوي . د پورته خوا ناسته مثبت او کښته خوا ناسته منفي فرض کیږي. په $f_{BB}$ کي لومړۍ B د ناستي موقیعت او دوئمه B د Redundant موقیعت ښایئ.د A ، B او C اشکالو له مخي کولي شو لاندي رابطه اخذ کړو.

$\Delta'_{BB} = B_y f_{BB}$

A

B

redundant $B_y$ applied

$B_y$

(c)

$$0 = -\Delta_B + \Delta'_{BB} \quad \text{.......................} \ (1)$$

پورتنۍ معادله کي 0 د (شکل a) د B نقطي کړوپیدنه ښایئ

$-\Delta_B$ د ( شکل b ) د B ټکي ناسته یا د خارجي بارونه لامله چي کومه ناسته د بیم په B ټکي کي پیداکیږي.

همدارنګه $\Delta'_{BB}$ د اضافي فرض شوي عکس العمل (Redundant) لاامله پیداکیدونکي ناسته ده ، که چیري نوموړي اضافي عکس العمل ته واحد قیمت ورکړشي په داسي حال کي $\Delta'_{BB}$ د $f_{BB}$ سره مساوي کیږي کوم چي د Linear flexibility coefficient په نامه یادیږي. په نوموړي رابطه کي د مخکي په څیر لومړي B د ناستي او دوهمه B د واحد بار له املا پیداشوي ناستي موقعیت ښایئ.کولي شو (1) معادله په لاندي شکل ولیکو.

$$0 = -\Delta_B + B_y f_{BB} \quad \text{.......................} \ (2)$$

په پورتني میتود کي د Redundant انتخاب اختیاري دي، د بیلګي په توګه په لاندي ورکړشوي بیم کي Redundant په څو طریقو انتخابیږي.




د $R_B$ اضافي عکس العمل په حیث انتخابیږي. Redundant هغه عکس العمل ته وایي چي په لري کولو سره ئي ساختمان خپله استواري د لاسه نه ورکوي بلکه د نامعین څخه معین ستاتیکي سیستم ته تبدیلیږي.په پورتني مثال کي کولي شو د $R_B$ پر ځایی د A تکي مومنټ د Redundant په توګه ونیسو.په داسي حال کي سخته اتکاء په ساکني اتکاء بدلیږي.لاندي شکل کي ښودل شوي




کله چي مومنټ د Redundant په حیث فرض کیږي په داسي حال کي د A تکي میلان یا زاویه په نظر کي نیول کیږي.




که چیري د مومنټ اندازه واحد وي

په داسي حال کي د Compatibility حالت د لاندي معادلي په واسطه ښودل کیږي.







qareebanwari@gmail.com

$$0 = \theta_A + M_A \alpha_{AA}$$

د قوي میتود او د Redundant انتخابولو دوهم مثال په لاندي ډول دي.



## مثال 1:




د ورکړ شوي ګاډر د متحرکي اتکاء عمودي غبرګون (vertical Reaction) پیدا کړي؟ د EI قیمت ثابت دي.

## حل:

1) لومړی د ساختمان معین والي چیک کیږي. په نوموړي مثال کي بیم یوه درجه (4-3=1 ) نامعین دي.

2) څرنګه چي ساختمان یوه درجه نامعین دي ، په ګاډر کي یو Redundant په نښه کیږي.




3) په حقیقي ګاډر کي د B ټکی ناسته د متمرکز بار او واحد بار له امله پیداکیدونکي ناستي سره مساوي کیږي.

$$0 = -\Delta_B + B_y f_{BB} \quad ......................1$$

د $\Delta_B$ او $f_{BB}$ قیمتونه د لاندي ورکړشوي جدول څخه په اسانۍ سره اخیستل کیږي

**Beam Deflections and Slopes**

| Loading | $v$ + ↑ | $\theta$ + ↰ | Equation + ↑ + ↰ |
|---|---|---|---|
| $v$, $P$, $x$, $L$ | $v_{max} = -\dfrac{PL^3}{3EI}$ at $x = L$ | $\theta_{max} = -\dfrac{PL^2}{2EI}$ at $x = L$ | $v = \dfrac{P}{6EI}(x^3 - 3Lx^2)$ |
| $v$, $M_O$, $x$, $L$ | $v_{max} = \dfrac{M_O L^2}{2EI}$ at $x = L$ | $\theta_{max} = \dfrac{M_O L}{EI}$ at $x = L$ | $v = \dfrac{M_O}{2EI}x^2$ |

| Beam | Max deflection | Slope | Elastic curve |
|---|---|---|---|
| Cantilever, uniform load $w$, length $L$ | $v_{max} = -\dfrac{wL^4}{8EI}$ at $x = L$ | $\theta_{max} = -\dfrac{wL^3}{6EI}$ at $x = L$ | $v = -\dfrac{w}{24EI}(x^4 - 4Lx^3 + 6L^2x^2)$ |
| Simply supported, load $P$ at $L/2$ | $v_{max} = -\dfrac{PL^3}{48EI}$ at $x = L/2$ | $\theta_{max} = \pm\dfrac{PL^2}{16EI}$ at $x = 0$ or $x = L$ | $v = \dfrac{P}{48EI}(4x^3 - 3L^2x)$, $0 \le x \le L/2$ |
| Simply supported, load $P$ at distance $a$ (with $b$ to the right end, span $L$) | | $\theta_L = -\dfrac{Pab(L+b)}{6LEI}$<br>$\theta = \dfrac{Pab(L+a)}{6LEI}$ | $v = -\dfrac{Pbx}{6LEI}(L^2 - b^2 - x^2)$<br>$0 \le x \le a$ |
| Simply supported, uniform load $w$ | $v_{max} = -\dfrac{5wL^4}{384EI}$ at $x = \dfrac{L}{2}$ | $\theta_{max} = \pm\dfrac{wL^3}{24EI}$ | $v = -\dfrac{wx}{24EI}(x^3 - 2Lx^2 + L^3)$ |
| Simply supported, uniform load $w$ over the left half ($L/2$, $L/2$) | | $\theta_L = -\dfrac{3wL^3}{128EI}$<br>$\theta_R = \dfrac{7wL^3}{384EI}$ | $v = -\dfrac{wx}{384EI}(16x^3 - 24Lx^2 + 9L^3)$<br>$0 \le x \le L/2$<br>$v = -\dfrac{wL}{384EI}(8x^3 - 24Lx^2 + 17L^2x - L^3)$<br>$L/2 \le x \le L$ |
| Simply supported, moment $M_O$ at the right end | $v_{max} = -\dfrac{M_OL^2}{9\sqrt{3}EI}$ | $\theta_L = -\dfrac{M_OL}{6EI}$<br>$\theta_R = \dfrac{M_OL}{3EI}$ | $v = -\dfrac{M_Ox}{6EIL}(L^2 - x^2)$ |

د $\frac{Pl^3}{3EI}$ هغه تکي ناسته ده چیرته چي متمرکز بار عمل کوي

$\Delta_B = \frac{Pl^2}{2EI} * (\frac{l}{2}) \leftarrow \theta = \frac{Pl^2}{2EI} \leftarrow \tan\theta = \frac{\Delta_B}{\frac{l}{2}}$

$$\Delta_B = \frac{P(L/2)^3}{3EI} + \frac{P(L/2)^2}{2EI}\left(\frac{L}{2}\right)$$

$$= \frac{(50\text{ kN})(6\text{ m})^3}{3EI} + \frac{(50\text{ kN})(6\text{ m})^2}{2EI}(6\text{ m}) = \frac{9000\text{ kN}\cdot\text{m}^3}{EI}\downarrow$$

$$f_{BB} = \frac{PL^3}{3EI} = \frac{1(12\text{ m})^3}{3EI} = \frac{576\text{ m}^3}{EI}\uparrow$$

پورتني قیمتونه په (1) معادله کي وضع کوو .

$$0 = -\frac{9000}{EI} + B_y\left(\frac{576}{EI}\right) \qquad \boxed{B_y = 15.6\text{ kN}}$$

د عرضي قوي او انحنايي مومنټ دیاګرام




د $R_b$ قیمت 15.6kN دي.

$\Sigma F_Y = 0$

$R_A = 50-15.6 = 34.4KN$

$M_A = (50*6)-(15.6*12) =112ft\text{-}K$

## مثال 2:




د ورکړ شوي ګاډر د عرضي قوي او انحنائي مومنټ دیاګرام رسم کړئ ؟ EI د قیمت ثابت دي.

## حل:

1) د بیم معین والي معلومول :

$$S.I = 2m + r_a - 2j$$

$$S.I = 2(1) + 4 - 2(2) = 6 - 4 = 2°$$

ساختمان دوه درجي نامعین دی .

2) د Redundant په نښه کول :

په نوموړي مثال کی د دواړو انجامونو د سختو اتکاګانو مومنټونه د Redundant په توګه معرفي کیږي دا په دي معني که چیري د ورکړشوي ګاډر څخه په دواړو انجامونو کي د مومنټونو برداشت کولو صلاحیت واخیستل شي په داسي حال کي دواړه سختي اتکاګاني په متحرکي اتکاګانو بدلیږي او ګاډر د نامعین څخه په معین ګاډر بدلیږي.

کله چي مومنټ د Redundant په توګه نیول کیږي د افقي یا عمودي اوږدیدني پرځاي تاویدونکي بي ځاي کیدنه (Rotational Displcement) په نظر کي نیول کیږي.

د تجمع قاعدي (Principle of superposition) او برابری حالت (Compatibility Condition) څخه په استفاده د اغیزمن بار له امله او واحد فرض شوي مومنټ له امله د A او B په نقطو کي میلان محاسبه کیږي.نوموړي زاوي په Compatibility equations کي وضع کولو سره د A او B ټکو مومنټونه لاس ته راځي.

د نوموړیو مونټونو په واسطه اتکائي عکس العملونه پیدا کیږي او په اخره کي د ګاډر د عرضي قوي او انحنائي مومنټ دیاګرامونه رسمیږي.

## 3) Compatibility Equations

$$0 = \theta_A + M_A\alpha_{AA} + M_B\alpha_{AB} \quad (1)$$

$$0 = \theta_B + M_A\alpha_{BA} + M_B\alpha_{BB} \quad (2)$$

پورتنی معادلي د لاندي ورکړ شوي اشکالو څخه د Compatibility په استعمالولو اخذ شوي.په اوله معادله کي صفر د حقیقي یا اصلي ګاډر د A ټکي میلان ښائي کوم چي د سختي اتکاء له امله صفر دي. $\theta_A$ د وارده بار له امله پیداکیدونکي میلان دي.

$\theta'_{AA}$ د واحد مومنټ له امله پیداکیدونکي میلان دي د ګاډر په A ټکي کي.

او همدارنګه $\theta'_{AB}$ د B په نقطه کي فرض شوي واحد مومنټ له امله پیداکیدونکي میلان دي.



د پورتنیو معادلو نامعلوم ارقام په لومړي سوال کي ورکړشوي جدول څخه اخیستل کیږي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| $v$, $w$, $x$, $\frac{L}{2}$, $\frac{L}{2}$ | | $\theta_{max} = \pm \frac{wL^3}{24EI}$ <br> 384EI | $v = -\frac{wx}{...}(16x^3 - 24Lx^2 + 9L^3)$ <br> $0 \le$ $v = \frac{wx}{24EI}(x^3 - 2Lx^2 + L^3)$ <br> $v = -\frac{wL}{384EI}(8x^3 - 24Lx^2 + 17L^2x - L^3)$ <br> $L/2 \le x \le L$ |
| $v$, $M_O$, $x$, $L$ | $v_{max} = \frac{M_O L^2}{9\sqrt{3}EI}$ | $\theta_L = -\frac{M_O L}{6EI}$ <br> $\theta_R = \frac{M_O L}{3EI}$ | $v = \frac{M_O x}{6EIL}(L^2 - x^2)$ |

$$\theta_A = \frac{3wL^3}{128EI} = \frac{3(2)(20)^3}{128EI} = \frac{375}{EI}$$

$$\theta_B = \frac{7wL^3}{384EI} = \frac{7(2)(20)^3}{384EI} = \frac{291.7}{EI}$$

$$\alpha_{AA} = \frac{ML}{3EI} = \frac{1(20)}{3EI} = \frac{6.67}{EI}$$

$$\alpha_{BB} = \frac{ML}{3EI} = \frac{1(20)}{3EI} = \frac{6.67}{EI}$$

$$\alpha_{AB} = \frac{ML}{6EI} = \frac{1(20)}{6EI} = \frac{3.33}{EI}$$

پورتني ارقام په لومړۍ او دوهمه معادله کي وضع کولو څخه لرو

$$0 = \frac{375}{EI} + M_A\left(\frac{6.67}{EI}\right) + M_B\left(\frac{3.33}{EI}\right)$$

$$0 = \frac{291.7}{EI} + M_A\left(\frac{3.33}{EI}\right) + M_B\left(\frac{6.67}{EI}\right)$$

$$M_A = -45.8 \text{ k}\cdot\text{ft} \qquad M_B = -20.8 \text{ k}\cdot\text{ft}$$

د دواړو معادلو د حل څخه

اتکائي عکس العملونه محاسبه کول:




$\Sigma M_B = 0$

$R_A*20 - (2*10*15) - 45.8+20 = 0$ ………………. >>> RA = 16.25K

$\Sigma F_Y = 0$

$16.25-20+R_B = 0$…………………………………….>>> RB =3.75K

د عرضي قوي او انحنائي مومنټ دیاګرام (Shear Force and Bending Moment Diagram)



(c)

## مثال 3:

د ورکړ شوي ګاډر د عرضي قوي او انحنائي مومنټ دیاګرام رسم کړئ ؟ د EI قیمت ثابت دي.




## حل:

### لومړی پړاو:

$$S.I = 2m + r_a - 2j$$
$$S.I = 2(2) + 4 - 2(3) = 8 - 6 = 2°$$

### دوهم پړاو:

د A او B نقطی مومنټ د Redundant په حیث منل کیږي.







د پورتني بیمانو لومړی M/EI دیاګرامونه رسموو او د Conjugate Beam میتود د دوو قضیو په واسطه په اتکائي ټکو کي میلان لاس ته راوړو.

د وادره بار له امله




واحد مومنټ د اول Redundant په موقیعیت کي




$$\propto_{AA} = \frac{2\left(\frac{1x20}{2EI}\right)}{3} = \frac{6.67}{EI}$$

$$\propto_{BA} = \frac{\left(\frac{1x20}{2EI}\right)}{3} = \frac{3.33}{EI}$$

Conjugate Beam د میتود



واحد مومنټ د دوهم Redundant په موقیعیت کي




دریم پړاو: Compatibility Matrix

$$[\theta] = [\theta^{/}] + [\propto][M]$$

$$\begin{bmatrix}\theta_A\\ \theta_B\end{bmatrix} = \begin{bmatrix}\theta_A{}^{/}\\ \theta_B{}^{/}\end{bmatrix} + \begin{bmatrix}\propto_{AA} & \propto_{BA}\\ \propto_{AB} & \propto_{BB}\end{bmatrix}\begin{bmatrix}M_A\\ M_B\end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix}0\\ 0\end{bmatrix} = \begin{bmatrix}-500\\ -2127.6\end{bmatrix} + \begin{bmatrix}6.67 & 3.33\\ 3.33 & 15\end{bmatrix}\begin{bmatrix}M_A\\ M_B\end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix}M_A\\ M_B\end{bmatrix} = -\begin{bmatrix}6.67 & 3.33\\ 3.33 & 15\end{bmatrix}^{-1}\begin{bmatrix}-500\\ -2127.6\end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix} M_A \\ M_B \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} 4.6 \\ 140.8 \end{bmatrix}$$

## څلورم پړاو: پاتي اتکائي عکس العملونه.

$$\begin{bmatrix} R_A \\ R_B \\ R_C \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} R_A{}' \\ R_B{}' \\ R_C{}' \end{bmatrix} + \begin{bmatrix} r_{AA} & r_{AB} \\ r_{BA} & r_{BB} \\ r_{CA} & r_{CB} \end{bmatrix} \begin{bmatrix} 4.6 \\ 140.8 \end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix} R_A \\ R_B \\ R_C \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} 10 \\ 41.25 \\ 31.25 \end{bmatrix} + \begin{bmatrix} 0.05 & -0.05 \\ -0.05 & 0.09 \\ 0 & -0.04 \end{bmatrix} \begin{bmatrix} 4.6 \\ 140.8 \end{bmatrix} \Longrightarrow \begin{bmatrix} R_A \\ R_B \\ R_C \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} 3.19 \\ 53.65 \\ 25.65 \end{bmatrix}$$

## پنځم پړاو: د عرضي قوي او انحنائي مومنټ دیاګرام




Shear Force Diagram

Bending Moment Diagram

# د چوکاټونو تحلیل لپاره د قوي میتود

## (Force Method of Analysis for Frames)

د نامعین ستاتیکي چوکاټونو د تحلیل لپاره د قوي میتود په هغه صورت کي ډیره مفیده تمامیږي کله چي د چوکاټونو د معین والي درجه ټیټه وي او چوکاټونه یو منزله وي.د څو منزله چوکاټونو (High degree of indeterminscy) لپاره د میلان او کږوېدني میتود (Slope and Deflection Method) کوم چي په راتلونکي څپرکو کي په تفصیل سره تشریح کیږي ، ډیر ښه نتائج ورکوي.

### مثال :4

د ورکړ شوي چوکاټ د عرضي قوي او انحنائي مومنټ دیاګرام رسم کړئ ؟ د EI قیمت ثابت دي.




لومړی پړاو:معین والي چیک کول

$$S.I=3m+r_a-3j$$
$$S.I=3(2)+5-3(3)$$
$$S.I=2°$$

دوهم پړاو: Basic Release structure

د C ټکي افقي عکس العمل لومړی او عمودی عکس العمل دوهم Redundant فرضیږي.

کولی شو د سختي اتکاء پر ځاي ساکنه اتکاء ولګو او مومنټ یي Redundant فرض کو.

Redundantهغه عکس العمل یا مومنټ ته وایې چي په لري کولو سره یي ساختمان د ټاکلي سیستمونو کټګوري ته داخلیږي او خپله استواري د لاسه نه و رکوي.




دریم پړاو:

په نومورې پړاو کي د چوکاټ د مختلفو برخو د یو مبدا څخه په x فاصله د مومنټ رابطي لیکل کیږي. دارابطي دبهر له اړخه وارده بارونو او د واحد بارونو لپاره جوړیږي.

| Member | AB | BC |
|---|---|---|
| Length limits | 0-10 | 0-10 |
| EI | 1 | 1 |
| origion | B | C |
| M | $-x^2$ | 0 |
| $m_1$ | 10 | x |
| $m_2$ | x | 0 |

### خلورم پړاو:

چوکاټ په دوو برخو ويشل کيږي او په هره برخه د تجمع قاعده (Principle of superposition) پلي کولو سره نامعلوم ارقام لاس ته راوړل کيږي




په دوئم شکل کي واحد بار د لومړي Redundant په جهت کي ښودل شوي او د عناصرو نورو غوټو ته د علامتي سيستم په پام کي نيولو سره انتقال شوي. د مبدا څخه په x فاصله د مومنټ رابطه د چوکاټ هري برخي لپاره جوړيږي .




همداراز په دريم شکل کي واحد بار ددوئم Redundant په جهت کي لګول کيږي.



$$[\Delta] = [\Delta'] + [f][R]$$

$$\begin{bmatrix}\Delta_1\\ \Delta_2\end{bmatrix}=\begin{bmatrix}\Delta_1{}'\\ \Delta_2{}'\end{bmatrix}+\begin{bmatrix}f_{11} & f_{12}\\ f_{21} & f_{22}\end{bmatrix}^{-1}\begin{bmatrix}R_1\\ R_2\end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix}R_1\\ R_2\end{bmatrix}=\begin{bmatrix}f_{11} & f_{12}\\ f_{21} & f_{22}\end{bmatrix}^{-1}\begin{bmatrix}\Delta_1-\Delta_1{}'\\ \Delta_2-\Delta_2{}'\end{bmatrix} \quad \text{———— A}$$

$$\Delta_1{}'=\sum\int_0^{10}\frac{\mathrm{Mm_1}}{\mathrm{EI}}\mathrm{dx}=\frac{1}{\mathrm{EI}}\int_0^{10}(-\mathrm{x}^2)(10).\mathrm{dx}+\frac{1}{\mathrm{EI}}\int_0^{10}(0)(\mathrm{x}).\mathrm{dx}$$

$$\Delta_1{}'=\frac{-3333.3}{\mathrm{EI}}$$

$$\Delta_2{}'=\sum\int_0^{10}\frac{\mathrm{Mm_2}}{\mathrm{EI}}\mathrm{dx}=\frac{1}{\mathrm{EI}}\int_0^{10}(-\mathrm{x}^2)(\mathrm{x}).\mathrm{dx}+0$$

$$\Delta_1{}'=\frac{-2500}{\mathrm{EI}}$$

$$f_{11}=\sum\int_0^{10}\frac{\mathrm{m_1}^2}{\mathrm{EI}}\mathrm{dx}=\frac{1}{\mathrm{EI}}\int_0^{10}(100).\mathrm{dx}+\frac{1}{\mathrm{EI}}\int_0^{10}(x^2).\mathrm{dx}$$

$$f_{11}=\frac{1333.33}{\mathrm{EI}}$$

$$f_{22}=\sum\int_0^{10}\frac{\mathrm{m_2}^2}{\mathrm{EI}}\mathrm{dx}=\frac{1}{\mathrm{EI}}\int_0^{10}(x^2).\mathrm{dx}+0$$

$$f_{22}=\frac{333.33}{\mathrm{EI}}$$

$$f_{12}=f_{21}=\sum\int_0^{10}\frac{m_1m_2}{\mathrm{EI}}\mathrm{dx}=\frac{1}{\mathrm{EI}}\int_0^{10}(\mathrm{x})10.\mathrm{dx}+0$$

$$f_{12}=f_{21}=\frac{500}{\mathrm{EI}}$$

پورتني ارقام په A معادله کي وضع کول څخه لرو.

$$\begin{bmatrix} R_1 \\ R_2 \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} 1333.33 & 500 \\ 500 & 333.33 \end{bmatrix}^{-1} \begin{bmatrix} 0-(-3333.33) \\ 0-(-2500) \end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix} R_1 \\ R_2 \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} -0.714 \\ 8.57 \end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix} R_{Ax} \\ R_{Ay} \\ M_A \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} R_{Ax}' \\ R_{Ay}' \\ M_A' \end{bmatrix} + \begin{bmatrix} r_{Ax}{''}_1 & r_{Ax}{''}_2 \\ r_{Ay}{''}_1 & r_{Ay}{''}_2 \\ M_A{''}_1 & M_A{''}_2 \end{bmatrix} \begin{bmatrix} R_1 \\ R_2 \end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix} R_{Ax} \\ R_{Ay} \\ M_A \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} 0 \\ 20 \\ -100 \end{bmatrix} + \begin{bmatrix} -1 & 0 \\ 0 & -1 \\ 10 & 10 \end{bmatrix} \begin{bmatrix} -0.714 \\ 8.57 \end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix} R_{Ax} \\ R_{Ay} \\ M_A \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} 0.714 \\ 11.43 \\ -21.44 \end{bmatrix}$$

د عرضي قوي او مومنټ دیاګرامونه کاږل:



## مثال :5

د ورکړ شوي چوکاټ د عرضي قوي او انحنائي مومنټ دیاګرام رسم کړئ ؟ د EI قیمت ثابت دي.




### لومړی پړاو:معین والي چیک کول

$S.I=3m+r_a-3j$

$S.I=3(3)+5-3(4)$

$S.I=2°$

### دوهم پړاو: Basic Release structure

د D ټکی افقي عکس العمل لومړی او عمودی عکس العمل دوهم Redundant فرضیږي.

کولی شو د A ټکي سختي اتکاء پر ځاي ساکنه اتکاء ولګو او مومنټ يې Redundant فرض کو او یا هم د A نقطي دواړه افقي او عمودي غبرګونونه Redundant فرض کو.

Redundantهغه عکس العمل یا مومنټ ته وایي چي په لرې کولو سره یې ساختمان د تاکلي سیستمونو کټګوري ته داخلیږي او خپله استواري د لاسه نه و رکوي.

### دریم پړاو:

په نوموړي پړاو کي د چوکاټ د مختلفو برخو د یو مبدا څخه په x فاصله د مومنټ رابطي لیکل کیږي. دارابطي دبهر له اړخه وارده بارونو او د واحد بارونو لپاره جوړیږي.

| Member | AB | BC | CD |
| --- | --- | --- | --- |
| Length limits | 0-16 | 0-40 | 0-16 |
| EI | 1 | 2 | 1 |
| origion | A | C | D |
| M | -2240+15x | $(-2.5x^2)/2$ | 0 |
| $m_1$ | -x | -16 | -x |
| $m_2$ | 40 | x | 0 |


2000'k
2.5k/ft
100k
40ft
100k
x
2000'k
15k
Fig -1
x
15k
2000'k
=2240'k
240'k


10'k
1k
1k
10'k
1k
10'k
1k
1k
x
Fig -2
x
x
10'k
1k
1k
=0
10'k




$$\Delta_1' = \sum \int_0^L \frac{Mm_1}{EI} dx = \frac{1}{EI}\int_0^{16} (-2240 + 15x)(-x).dx + \frac{1}{2EI}\int_0^{40} (-1.25x^2)(-16).dx + 0$$

$$\Delta_1' = \frac{-479573.33}{EI}$$

$$\Delta_2' = \sum \int_0^L \frac{Mm_2}{EI} dx = \frac{1}{EI}\int_0^{16} (-2240 + 15x)(40).dx + \frac{1}{2EI}\int_0^{40} (-1.25x^2)(x).dx + 0$$

$$\Delta_1' = \frac{-1756800}{EI}$$

$$f_{11} = \sum \int_0^L \frac{{m_1}^2}{EI} dx = \frac{1}{EI}\int_0^{16} (+x^2).dx + \frac{1}{2EI}\int_0^{40} (-16^2).dx + \frac{1}{EI}\int_0^{16} (+x^2).dx$$

$$f_{11} = \frac{7850.67}{EI}$$

$$f_{12} = f_{21} = \sum \int_0^{10} \frac{m_1 m_2}{\mathrm{EI}} \mathrm{dx} = \frac{1}{\mathrm{EI}} \int_0^{16} (-\mathrm{x})(40).\mathrm{dx} + \frac{1}{2\mathrm{EI}} \int_0^{40} (-16)(x).\mathrm{dx} + 0$$

$$f_{12} = f_{21} = \frac{-11520}{\mathrm{EI}}$$

$$f_{22} = \sum \int_0^{10} \frac{\mathrm{m_2}^2}{\mathrm{EI}} \mathrm{dx} = \frac{1}{\mathrm{EI}} \int_0^{16} (40^2).\mathrm{dx} + \frac{1}{2\mathrm{EI}} \int_0^{40} (x^2).\mathrm{dx} + 0$$

$$f_{22} = \frac{36266.67}{\mathrm{EI}}$$

$$\begin{bmatrix} R_1 \\ R_2 \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} 7850.67 & -11520 \\ -11520 & 36266.67 \end{bmatrix}^{-1} \begin{bmatrix} (-479573.33) \\ (-1756800) \end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix} R_1 \\ R_2 \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} 18.72 \\ 54.38 \end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix} R_{Ax} \\ R_{Ay} \\ M_A \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} R_{Ax}' \\ R_{Ay}' \\ M_A' \end{bmatrix} + \begin{bmatrix} r_{Ax}{''}_1 & r_{Ax}{''}_2 \\ r_{Ay}{''}_1 & r_{Ay}{''}_2 \\ M_A{''}_1 & M_A{''}_2 \end{bmatrix} \begin{bmatrix} R_1 \\ R_2 \end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix} R_{Ax} \\ R_{Ay} \\ M_A \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} -15 \\ 100 \\ -2240 \end{bmatrix} + \begin{bmatrix} 1 & 0 \\ 0 & -1 \\ 0 & 40 \end{bmatrix} \begin{bmatrix} 18.72 \\ 54.38 \end{bmatrix}$$

$$\begin{bmatrix} R_{Ax} \\ R_{Ay} \\ M_A \end{bmatrix} = \begin{bmatrix} 3.72 \\ 45.62 \\ -64.80 \end{bmatrix} \mathrm{k}$$

Final diagram



**REFRENCES: (اخذ ليكونه)**

1. **Structural analysis by R C Hibbler**
2. **Structural analysis A classical and matrix approach by McCormac and Nelson**
3. Indeterminate structural analysis by c k wang
4. Basic structural analysis: c.s.reddy
5. Elementary structural analysis: j.b.willbur, c.h. norris and utku
6. Plastic methods of structural analysis: b.g. neal
7. Theory of structures: b.c.punmia, ashok jain, arun jain

# دریم څپرکی

## دمومنټ ویشني میتود Moment Distribution Method

### تعارف (Introduction)

د مومنټ ویشني میتود د اوړیدني میتودونو څخه یو ده او په څو منزله او څو وایي لرونکي چوکاټونو کي تري ډیر په اسانۍ او چټکتیا استفاده کیږی. نومړي میتود په کال ۱۹۳۰ کي د هارډي کراس لخوا اخذ شوي او په خپل وخت کي د ساختمانونو د تحلیل په برخه کي مهم پیش رفت ګڼل کیدو. د مومنټ ویشني میتود اساس په یو څو پرله پسي اټکلونو، کوم چي تر مطلوب دقت (Required accuracy) پوري په اسانۍ سره غزول کیدای شی، ولاړ دي.

د نومړي میتود په پروسه کي تر ټولو لومړي دا فرضیه په کار اچول کیږي چي د ساختمان هره یوه غوټه سخته (Fixed) ده اود هر یو جواینټ په پرله پسي ډول په خلاصولو (unlocking) او کولپ (Locking) کولو سره د غوټو داخلي مومنټونه وصل شویو برخو ته لیږدول کیږي او په پایله کي ټول مومنټونه سره خپلو کي بیلانس کیږي. نوموړي میتود تکراري پړاونه لري.

### علامتي سیستم

ساعت د عقربی مطابق (Clockwise) مومنټ مثبت او مخالف مومنټونه منفي نیول کیږي.




**سخت انجامي مومنټ (Fixed End Moment)** د اغیزمن بار لاندي قرارلرونکي غړیو په سختو غټو کي او یا هم کله چي اتکاء دیوال وي ، مومنټ یي سخت انجامي مومنټ په نامه یادیږي. نوموړي مومنټ دلاندي ورکړ شوي جدول څخه په اسانۍ سره اخیستل کیږي.

## Fixed End Moments

| Loading | Both ends fixed | | A fixed, B pinned |
|---|---|---|---|
| Point load P at midspan ($L/2$, $L/2$) | $(FEM)_{AB} = \frac{PL}{8}$ | $(FEM)_{BA} = \frac{PL}{8}$ | $(FEM)'_{AB} = \frac{3PL}{16}$ |
| Point load P at distances $a$, $b$ ($L$) | $(FEM)_{AB} = \frac{Pb^2a}{L^2}$ | $(FEM)_{BA} = \frac{Pa^2b}{L^2}$ | $(FEM)'_{AB} = (\frac{P}{L^2})(b^2a + \frac{a^2b}{2})$ |
| Two loads P at $L/3$, $L/3$, $L/3$ | $(FEM)_{AB} = \frac{2PL}{9}$ | $(FEM)_{BA} = \frac{2PL}{9}$ | $(FEM)'_{AB} = \frac{PL}{3}$ |
| Three loads P at $L/4$, $L/4$, $L/4$, $L/4$ | $(FEM)_{AB} = \frac{5PL}{16}$ | $(FEM)_{BA} = \frac{5PL}{16}$ | $(FEM)'_{AB} = \frac{45PL}{96}$ |
| Uniform load $w$ over $L$ | $(FEM)_{AB} = \frac{wL^2}{12}$ | $(FEM)_{BA} = \frac{wL^2}{12}$ | $(FEM)'_{AB} = \frac{wL^2}{8}$ |
| Uniform load $w$ over first $L/2$ | $(FEM)_{AB} = \frac{11wL^2}{192}$ | $(FEM)_{BA} = \frac{5wL^2}{192}$ | $(FEM)'_{AB} = \frac{9wL^2}{128}$ |
| Triangular load $w$ (max at A) over $L$ | $(FEM)_{AB} = \frac{wL^2}{20}$ | $(FEM)_{BA} = \frac{wL^2}{30}$ | $(FEM)'_{AB} = \frac{wL^2}{15}$ |
| Symmetric triangular load $w$ (peak at $L/2$) | $(FEM)_{AB} = \frac{5wL^2}{96}$ | $(FEM)_{BA} = \frac{5wL^2}{96}$ | $(FEM)'_{AB} = \frac{5wL^2}{64}$ |

## دغړیو سختوالي ضریب (Member Stiffness Factor)

په شکل کي یو ګاډر چي په یو اړخ کي سخته او بل اړخ کي ساکنه اتکاء لري ښودل شوي. کله چي A غوټه د اپلائډ مومنټ لاندي واقع کيږي په داسي حال کي




شکل-۱

AB برخه په A ټکي کي د $\theta_A$ په اندازه ميلان کوي، د سختماني ميخانيک په اتم فصل کي د ميلان او مومنټ ترمنځ رابطه په تفصيل سره تشريح شوي. کله چي ليري انجام سخت وي په داسي حال کي د غړي د سختوالي ضريب د لاندي فورمول په واسطه لاس ته رازي.

$$K = \frac{4EI}{L} \quad far\ end\ fixed$$

ستفنس فکتور هغه مومنټ ته وايي کوم چي A انجامي نقطه د يو راډيان په اندازه څرخوي

## د غوټي د سختوالي ضريب (Joint stiffness factor)

کله چي يو شمير برخي د يوي غوټي سره سخت وصل شوي وي او د هري برخي ليري اړخ سخته اتکاء لرونکي وي په داسي حال کي د تجمع قاعدي له مخي د A غوټي د سختوالي ضريب د ټولو برخو د سختوالي ضريبونو د مجموعي سره مساوي کيږي .




په شکل کي د ښودل شوي چوکاټ د A غوټي د سختوالي ضريب په لاندي ډول محاسبه کيږي

$$K_T = 1000 + 4000 + 5000 = 10000$$

## د ويشني ضريب (Distribution Factor)




په شکل کي ښودل شوی A غوټه کوم چي د AB ، AC ، او AD برخو سره وصل شوي ده د 2000N-m مومنټ لاندي واقع ده. دي لپاره چي A غوټه په توازن کي پاتي شي هر يو غړي يو څه اندازه مقاومتي مومنټ (Resisting Moment) وړاندي کوي.د نوموړي مقاومتي مومنټ اندازه معلومولو لپاره د ويشني ضريب څخه استفاده کيږي.د ويشني ضريب په لاندي فورمول محاسبه کيږي.

$$D.F = \frac{K}{\Sigma K}$$




په پورتني شکل کي د AB ، AC ، او AD برخو د ویشني ضریب په لاندي ډول ترلاسه کیږي.

$$D.F_{AB} = \frac{K_{AB}}{\Sigma K} = \frac{4000}{10000} = 0.4$$




$$D.F_{AB} = \frac{K_{AD}}{\Sigma K} = \frac{1000}{10000} = 0.1$$

$$D.F_{AB} = \frac{K_{AC}}{\Sigma K} = \frac{5000}{10000} = 0.5$$

د هري یوي برخی لخوا مقاومتي مومنټ (Resisting Moment) په لاندي ډول محاسبه کیږي

$$M_{AB} = 0.4(2000) = 800N - m$$

$$M_{AC} = 0.5(2000) = 1000N - m$$

$$M_{AD} = 0.1(2000) = 200N - m$$

## (Carry over Factor)

په لاندي ښودل شوي شکل کي مومنټ A مساوي کیږي له $M_{AB} = (\frac{4EI}{L})\theta_A$ او مومنټ B له سره $M_{BA} = (\frac{2EI}{L})\theta_A$



دواړه معادلي د θ لپاره حل کولو څخه

$$M_{BA} = \frac{M_{AB}}{2}$$

په پن انجامي نقطي کي مومنټ په مقابل انجام کي نيماېي مومنټ پيدا کوي.

دCarry over factor مومنټ هغه کسر ته واېي کوم چي د پن انجامي نقطي څخه سختي انجامي نقطي ته ليږدول کيږي.په نوموړي حالت کي carry over factor د مومنټ نيمايي يا $+\frac{1}{2}$ دي.مثبت علامه د دواړو مومنټونو هم جهتي ښايي.

## ګاډرونو لپاره د مومنټ ويشني ميتود




### لومړي پړاو:

د ګاډر د مختلفو وايو د سخت والي ضريب (Stiffness factor) محاسبه کول

$$K_{BA} = \frac{4E(300)}{15} = 4E(20)\ \text{in}^4/\text{ft} \qquad K_{BC} = \frac{4E(600)}{20} = 4E(30)\ \text{in}^4/\text{ft}$$

$$K_{BC} = \frac{4E(600)}{20} = 4E(30)\ \text{in}^4/\text{ft} \qquad K = \frac{4EI}{L}$$

### دوهم پړاو:

د ويشني ضريب (Distribution Factor) محاسبه کول

$$D.F = \frac{K}{\Sigma K}$$

$$DF_{BA} = \frac{4E(20)}{4E(20) + 4E(30)} = 0.4$$

$$DF_{BC} = \frac{4E(30)}{4E(20) + 4E(30)} = 0.6$$

هغه مومنټ کوم چې سختي اتکاء ته راانتقال شي ټوله برخه يې همدلته جذبيږي، ساکنه اتکاء د مومنټ اخيستلو صلاحيت نه لري لهذا ټوله برخه يې وصل شويو غړيو ته انتقاليږي.

$$D.F_{AB} = 0$$

$$D.F_{CB} = 1$$

دريم پړاو:

Fixed end momentمحاسبه کول

$$(FEM)_{BC} = -\frac{wL^2}{12} = -\frac{240(20)^2}{12} = -8000\ \text{lb}\cdot\text{ft}$$

$$(FEM)_{CB} = \frac{wL^2}{12} = \frac{240(20)^2}{12} = 8000\ \text{lb}\cdot\text{ft}$$

څلورم پړاو:

د تړل شويو غوټو پرانستل او په پرله پسي ډول د مومنټونو مقاومتي مومنټ اخيستل او ويشنه.

| Joint | A | B | | C | |
|---|---|---|---|---|---|
| Member | AB | BA | BC | CB | |
| DF | 0 | 0.4 | 0.6 | 1 | 1 |
| FEM | | | −8000 | 8000 | 2 |
| Dist. | | 3200 | 4800 | −8000 | 3 |
| CO | 1600 | | −4000 | 2400 | 4 |
| Dist. | | 1600 | 2400 | −2400 | 5 |
| CO | 800 | | −1200 | 1200 | 6 |
| Dist. | | 480 | 720 | −1200 | 7 |
| CO | 240 | | −600 | 360 | 8 |
| Dist. | | 240 | 360 | −360 | 9 |
| CO | 120 | | −180 | 180 | 10 |
| Dist. | | 72 | 108 | −180 | 11 |
| CO | 18 | | −27 | 27 | 14 |
| Dist. | | 10.8 | 16.2 | −27 | 15 |
| CO | 5.4 | | −13.5 | 8.1 | 16 |
| Dist. | | 5.4 | 8.1 | −8.1 | 17 |
| CO | 2.7 | | −4.05 | 4.05 | 18 |
| Dist. | | 1.62 | 2.43 | −4.05 | 19 |
| CO | 0.81 | | −2.02 | 1.22 | 20 |
| Dist. | | 0.80 | 1.22 | −1.22 | 21 |
| CO | 0.40 | | −0.61 | 0.61 | 22 |
| Dist. | | 0.24 | 0.37 | −0.61 | 23 |
| $\Sigma M$ | 2823 | 5647 | −5647 | 0 | 24 |

د مومنټ ویشنې ضریب

سخت انجامي مومنټ

په B جواینټ د مومنتونو مجموعه

BA برخه د بار د نه شتون له امله هیڅ سخت انجامي مومنټ نه لري.د مجموعي اخیستو وروسته نوموړي مومنټ د ویشني ضریب سره ضربیږي او د DEM په قطار کي لیکل کیږي.COM د مخکنبي مومنټ نیماییي وي

## د تحلیل کړنلاره (Procedure for Analysis)

1) د سختوالي ضریب (Stiffness factor) محاسبه کول

2) د ویشني ضریب (Distribution factor) محاسبه کول

- د سختي اتکاء لپاره د ویشني ضریب 0 نیول کیږي.

- د ساکني او متحرکي اتکاء لپاره د ویشني ضریب 1 نیول کیږي
- FEM لپاره د ورکړ شوي جدول څخه استفاده وکړي

3) د تعادل حالت برقرار ساتلو لپاره مطلوبه مومنټ محاسبه کول (DEM)

4) د جواینټ پرانستل او مومنټ وصل شویو برخو ته لیږدول

5) مومنټ د Carry over factor سره ضربول

6) Carry over factor په نوموړي میتود کی 1/2+ نیول کیږي.

## لومړي مثال:

د ورکړ شوي ګاډر هر اتکایي مومنټ د مومنټ ویشني میتود په زریعه معلوم کړي؟ د EI قیمت ثابت دي.




## حل:

## لومړي پړاو:

د ګاډر د مختلفو وایو د سخت والي ضریب (Stiffness factor) محاسبه کول

$$K = \frac{4EI}{L}$$

$$K_{AB} = \frac{4EI}{12} \qquad K_{BC} = \frac{4EI}{12} \qquad K_{CD} = \frac{4EI}{8}$$

دوهم پړاو:

د ویشني ضریب (Distribution Factor) محاسبه کول

$$D.F = \frac{K}{\Sigma K}$$

$$DF_{AB} = DF_{DC} = 0 \qquad DF_{BA} = DF_{BC} = \frac{4EI/12}{4EI/12 + 4EI/12} = 0.5$$

$$DF_{CB} = \frac{4EI/12}{4EI/12 + 4EI/8} = 0.4 \quad DF_{CD} = \frac{4EI/8}{4EI/12 + 4EI/8} = 0.6$$

دریم پړاو:

Fixed end moment محاسبه کول

$$(FEM)_{BC} = -\frac{wL^2}{12} = -\frac{20x12^2}{12} = -240KN - m$$

$$(FEM)_{CB} = +\frac{wL^2}{12} = +\frac{20x12^2}{12} = +240KN - m$$

$$(FEM)_{CD} = -\frac{PL}{8} = -\frac{250x8}{8} = -250KN - m$$

$$(FEM)_{DC} = +\frac{PL}{8} = +\frac{250x8}{8} = +250KN - m$$

څلورم پړاو:

د ترل شویو غوټو پرانستل او په پرله پسي ډول د مومنټونو مقاومتي مومنټ اخیستل او ویشنه.

| joint | A | B | | C | | D |
|---|---|---|---|---|---|---|
| Member | AB | BA | BC | CB | CD | DC |
| D.F | 0 | 0.5 | 0.5 | 0.4 | 0.6 | 0 |
| FEM | | | -240 | 240 | -250 | 250 |
| DEM | | 120 | 120 | 4 | 6 | |
| COM | 60 | | 2 | 60 | | 3 |
| DEM | | -1 | -1 | -24 | -36 | |
| COM | -0.5 | | -12 | -0.5 | | -18 |
| DEM | | 6 | 6 | 0.2 | 0.3 | |
| COM | 3 | | 0.1 | 3 | | 0.2 |
| DEM | | -0.05 | -0.05 | -1.2 | -1.8 | |
| COM | -0.02 | | -0.6 | -0.02 | | -0.9 |
| DEM | | 0.3 | 0.3 | 0.01 | 0.01 | |
| ∑M | 62.5 | 125.2 | -125.2 | 281.5 | -281.5 | 234.3 |

د هر جواینټ مومنټ محاسبه کولو وروسته د تجمع قاعدی څخه په استفاده اتکایي غبرګونونه محاسبه کیږي.




## مومنټ دیاګرام




## دوهم مثال:

د ورکړې شوي ګاډر هر اتکايي مومنټ د مومنټ ویشني میتود په زریعه معلوم کړي او د انحنايي مومنټ دیاګرام یي رسم کړي؟ د EI قیمت ثابت دي.



حل:

لومړي پړاو:

د ګاډر د مختلفو وایو د سخت والي ضریب (Stiffness factor) محاسبه کول

$$K_{BC} = \frac{4E(750)}{20} = 150E \qquad K_{CD} = \frac{4E(600)}{15} = 160E$$

دوهم پړاو:

د ویشني ضریب (Distribution Factor) محاسبه کول

$$D.F = \frac{K}{\Sigma K}$$

$$DF_{BC} = 1 - (DF)_{BA} = 1 - 0 = 1$$

$$DF_{CB} = \frac{150E}{150E + 160E} = 0.484$$

$$DF_{CD} = \frac{160E}{150E + 160E} = 0.516$$

$$DF_{DC} = \frac{160E}{\infty + 160E} = 0$$

دریم پړاو:

Fixed end moment محاسبه کول

$$(FEM)_{BA} = 400\ \text{lb}(10\ \text{ft}) = 4000\ \text{lb}\cdot\text{ft}$$

$$(FEM)_{BC} = -\frac{wL^2}{12} = -\frac{60(20)^2}{12} = -2000\ \text{lb}\cdot\text{ft}$$

$$(FEM)_{CB} = \frac{wL^2}{12} = \frac{60(20)^2}{12} = 2000\ \text{lb}\cdot\text{ft}$$

څلورم پړاو:

د تړل شویو غوټو پرانستل او په پرله پسي ډول د مومنټونو مقاومتي مومنټ اخیستل او ویشنه

| Joint | B | | C | | D |
|---|---|---|---|---|---|
| Member | | BC | CB | CD | DC |
| DF | 0 | 1 | 0.484 | 0.516 | 0 |
| FEM | 4000 | −2000 | 2000 | | |
| Dist. | | −2000 | −968 | −1032 | |
| CO | | −484 | −1000 | | −516 |
| CO | | −58.6 | −121 | | −62.4 |
| Dist. | | 58.6 | 58.6 | 62.4 | |
| CO | | 29.3 | 29.3 | | 31.2 |
| Dist. | | −29.3 | −14.2 | −15.1 | |
| CO | | −7.1 | −14.6 | | −7.6 |
| Dist. | | 7.1 | 7.1 | 7.6 | |
| CO | | 3.5 | 3.5 | | 3.8 |
| Dist. | | −3.5 | −1.7 | −1.8 | |
| CO | | −0.8 | −1.8 | | −0.9 |
| Dist. | | 0.8 | 0.9 | 0.9 | |
| CO | | 0.4 | 0.4 | | 0.4 |
| Dist. | | −0.4 | −0.2 | −0.2 | |
| CO | | −0.1 | −0.2 | | −0.1 |
| Dist. | | 0.1 | 0.1 | 0.1 | |
| $\Sigma M$ | 4000 | −4000 | 587.1 | −587.1 | −293.6 |

## د مومنټ دیاګرام


400 lb
400 lb
10 ft
4000 lb · ft
770.6 lb
60 lb/ft
20 ft
429.4 lb
587.1 lb · ft
58.5 lb
15 ft
58.5 lb
293.6 lb · ft
M (lb · ft)
949.1
10
30
293.6
x (ft)
22.8
−587.1
−4000

## د چوکاټونو تحلیل (Analysis of Frames)

### دریم مثال:

د لاندي ورکړ شوي چوکاټ د هري غوټي مومنټونه محاسبه کړي او د انحنايي مومنټ دیاګرام یې رسم کړي.A سخته او C پن اتکاء ده. د EI قیمت ثابت دی




### حل:

### لومړي پړاو:

د ګاډر د مختلفو وایو د سخت والي ضریب (Stiffness factor) محاسبه کول

$$K_{AB} = \frac{4\mathrm{EI}}{\mathrm{L}_1} = \frac{4EI}{16}$$

$$K_{BC} = \frac{4\mathrm{EI}}{\mathrm{L}_2} = \frac{4\mathrm{EI}}{12}$$

## دوهم پړاو:

د ويشني ضريب (Distribution Factor) محاسبه کول

$$D.F = \frac{K}{\Sigma K}$$

$$(D.F)_{AB} = 0$$

$$(D.F)_{BA} = \frac{\frac{4EI}{L_1}}{\frac{4EI}{L_1} + \frac{4EI}{L_2}} = \frac{4EI(\frac{1}{L_1})}{4EI(\frac{1}{L_1} + \frac{1}{L_2})} = \frac{(\frac{1}{L_1})}{(\frac{1}{L_1} + \frac{1}{L_2})} = \frac{(\frac{1}{16})}{(\frac{1}{16} + \frac{1}{12})} = 0.43$$

$$(D.F)_{BC} = 0.57$$

$$(D.F)_{CB} = 1$$

## دريم پړاو:

سخت انجامي مومنټ محاسبه کول

$(FEM)_{AB} = -\frac{(4)(16)}{8} = -8\ k-ft$

$(FEM)_{BA} = 8$ k-ft

$FEM)_{BC} = \frac{(2)(12)^2}{12} = -24\ k-ft$

$FEM)_{CB} = 24$ k-ft

## خلورم پړاو:

د ترړل شویو غوټو پرانستل او په پرله پسي ډول د مومنټونو مقاومتي مومنټ اخیستل او ویشنه

| joint | A | B | | C |
|---|---|---|---|---|
| Member | AB | BA | BC | CB |
| D.F | 0 | 0.43 | 0.57 | 1 |
| FEM | -8 | 8 | -24 | 24 |
| DEM | | 6.88 | 9.12 | -24 |
| COM | 3.44 | | -12 | 4.56 |
| DEM | | 5.16 | 6.84 | -4.56 |
| COM | 2.58 | | -2.28 | 3.42 |
| DEM | | 0.9804 | 1.2996 | -3.42 |
| ∑M | -1.98 | 21.0204 | -21.0204 | 0 |

د اتکایي غبرګونونو محاسبه






## خلورم مثال:

د ورکړ شوي چوکاټ د هر جواینټ د اخلی مومنټ محاسبه کړي؟ A اتکاء سخته ، D او E پن ده.د EI قیمت ثابت دي




## حل:

## لومړي پړاو:

د ګاډر د مختلفو وایو د سخت والي ضریب (Stiffness factor) محاسبه کول

$$K_{AB} = \frac{4EI}{15} \qquad K_{BC} = \frac{4EI}{18} \qquad K_{CD} = \frac{3EI}{15} \qquad K_{CE} = \frac{3EI}{12}$$

## دوهم پړاو:

د ویشني ضریب (Distribution Factor) محاسبه کول

$$D.F = \frac{K}{\Sigma K}$$

$$DF_{AB} = 0$$

$$DF_{BA} = \frac{4EI/15}{4EI/15 + 4EI/18} = 0.545$$

$$DF_{BC} = 1 - 0.545 = 0.455$$

$$DF_{CB} = \frac{4EI/18}{4EI/18 + 3EI/15 + 3EI/12} = 0.330$$

$$DF_{CD} = \frac{3EI/15}{4EI/18 + 3EI/15 + 3EI/12} = 0.298$$

$$DF_{CE} = 1 - 0.330 - 0.298 = 0.372$$

$$DF_{DC} = 1 \qquad DF_{EC} = 1$$

دریم پړاو:

سخت انجامي مومنټ محاسبه کول

$$(FEM)_{BC} = \frac{-wL^2}{12} = \frac{-5(18)^2}{12} = -135 \text{ k} \cdot \text{ft}$$

$$(FEM)_{CB} = \frac{wL^2}{12} = \frac{5(18)^2}{12} = 135 \text{ k} \cdot \text{ft}$$

څلورم پړاو:

د ټرل شویو غوټیو پرانستل او په پرله پسي ډول د مومنټونو مقاومتي مومنټ اخیستل او ویشنه

